# مورچل

لسم کال نهمه، پرلپسې ۹۷ یمه گڼه،
ذی الحجة ۱۴۳۷هق، سپتمبر ۲۰۱۶م

د أمیر المؤمنین شیخ القرآن والحدیث
هبة الله اخندزاده (حفظه الله)
## مؤمنانه فراست!

## ملګرو ملتونو سرمشر یزه
او د اسلامي امت دردونه!

## دهارون الرشید په نوم
حضرت سفیان ثوری «رحمه الله» لیک

## وحدت ملی
یا شرکت سهامی؟

## ششم میزان
روز نجات کشور

## فیس بوک
داسرائیلو په لومو کې




## طالبان
کامیاب دي که ناکام؟



علمي، سياسي او جهادي مياشتينۍ خپرونه

لسم کال نهمه، پرلپسي ۹۷ يـمه ګڼه، ذي الحجة ۱۴۳۷هق سپتمبر ۲۰۱۶م



لړليک

| ګڼه | مطلب | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سرمقاله | ۱ |
| ۲ | طالبان کامياب دي که ناکام؟ | ۳ |
| ۳ | وحدت ملی يا شرکت سهامی ؟ | ۶ |
| ۴ | فيسبوک د اسرائيلو په لومو کې | ۸ |
| ۵ | ششم ميزان روز نجات کشور | ۱۱ |
| ۶ | د اسلام غزوات او سرايا | ۱۴ |
| ۷ | دجهاد فقهي مسائل | ۱۷ |
| ۸ | هغه څوک چې امام شافعي رحمه الله سره يې حسد کاوه! | ۱۹ |
| ۹ | دهارون الرشيد په نوم دحضرت سفيان ثوري رحمه الله.. | ۲۱ |
| ۱۰ | په لمانځه کې څرنګه خشوع ترلاسه کولای شئ؟ | ۲۲ |
| ۱۱ | جنګي جنايتونه (سپتمبر) | ۲۷ |
| ۱۲ | د مورچل وږمې | ۳۰ |
| ۱۳ | د سپتمبر دمياشتې خبرونه | ۳۳ |
| ۱۴ | مياشتنی غورچاڼ | ۱۰۸ |

د امتياز خاوند

د افغانستان اسلامي امارت
د فرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير

شکـــور (شفق)

کتـــنپلاوی

حـــسن خيـل
حـــسن زوی
زبـير مـــسافـر
ايـــوب صــافی
حکمت بغلانی
حافـظ سعـــيد

تخنيکي چارې

د فرهنګي کميسيون تخنيکي څانګه

مکاتباتي ادرس

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

سرمقاله



## دشیخ القرآن والحدیث هبة اللّه اخندزاده (حفظه اللّه)

# مؤمنانه فراست!

دافغانستان داسلامي امارت ددرانده زعیم محترم امیرالمؤمنین (شیخ القرآن والحدیث هبة الله اخندازاده حفظه الله) دبیعت په لومړیوشیبوکې به څینو غرب پلوو رسنیو اوپلورل شویو قلموالو ویل :

چې نوموړی نه کومه جنګي تجربه لري او نه محاربوي بصیرت ! ددوئ په آند دا یوازې دقضایي تجربو نه برخوردار دی ، له امله به یې نبایي مجاهدین ددې نه پس کوم دپام وړ پرمختګ ونکړای شي او شاید ډیر ژر دفتحو قافلې درکوداو جمود په موړ ودریږي او.....او......

خو چې کله دعمري عملیاتودبارودو لوخړو دکابل چاړواکي وارخطا کړل اونوریې رسنیو هم ورته توجیه نشوای کولای، نودخپلو غولونکیو ادعاوو دپټولو لپاره یې دخپل عادت سره سم په اوتو بوتو پیل وکړ،کله دا چې طالبان دنورو په اشارو عملیاتي پالیسي جوړوي ،کله وایې چې دوئ وطن ورانوي اوکله نورنادرسته الزام تراشي کوي ،پداسې حال کې چې دکابل دواک په ګدی ناست واکمن ،همدا اوس هم دلویدیځووینه څښونکیو حکومتونوپه مستقیمه قوماندہ او لاربنوونه دافغان ولس او اسلامي خاورې پرضد دسایس جوړوي اودهغوئ په نغوتودخپل ملت سره په جګړه بوخت دي .

داسلامي امارت دنوي زعامت دمؤمنانه فراست ،دپوځي او سیاسي بصیرت کفر سوزونکیو شعاعواودایمان نوراني وړانګو،دعمري بریدونونظامي جغرافیه، دهیواد کونج کونج ته وغځوله اونن یې له برکته دکندزاو هلمند په شان دهیواد دشمال ،سویل اوختیځ نور ستراتیژیک ولایتونه هم تربشپړ نظامي پوښښ لاندي راوستي اوکه بهرني باداران یې ورسره هوایي اوځمکنی کمک ونکړي، شوني ده چې په ډیر لنډ وخت کې به یې دظلم اوغلامی کاسه چپه شي اودماتي له بارز برخلیک سره به مخامخ شي .

دنړیوال ښکیلاک پرضد روان جهادي بریدونه، دا په اثبات رسوي، چې داسلامي امارت زعیم پرعلمي او سیاسي وړتیا سربیره جهادي او پوځي صلاحیتونه هم لري او دیوه مدبرمدیر او

هوښتيارمشر په توګه دده ټاکنه داسلامي امارت دمشرتابه شورى پر ځاى او وخت انتخاب دى ،هغه ځه چې ديوه شرعي امير لپاره اړين وي، هغه پکې عملاًشتون لري ،علم ،تقوى ،جرأت ،سياسي بصيرت او بدني قوت ټول هغه ترجيحات دي، چې اسلامي شريعت يې ديوچا د مشرۍ لپاره دترجيحي بنسټونو په بڼه مني او پدې صفاتو موصوف شخص ته ددې حق ورکوي، چې دمسلمانانو امامت کبرى وکړي .

داچې اسلامي امارت کې دشخصيت پالني پر ځاى اسلامي اصول ،ديني او ملي ارزښتونه دکوم مسؤليت يا دچا دمشرتابه لپاره مسلم معيارونه دي او دهمدي اقدارو په رڼا کې دزعامت پريکړه داهل الحل والعقدشورى ته محول کوي، دکره معلوماتوپه اساس دشيخ صيب دزعامت ټاکنه هم دې نورمونو ته په کتوشوي ،نو په ځغرده ويلاى شو،چې نومړى ديوه شرعي امير په حيث له هرډول ممکن صلاحيت نه بهرمند دى .

تردې مخکې شهيد اميرالمؤمنين (ملااختر محمد منصور رحمه الله) پر ضد هم نړيوالې ميډيا زهرجن تبليغات وکړل، کله به يې دده پرخلاف د مخالفت کم شميرې ډلګۍ ته ديوه موازې امارت تشکل ورکاوه او کله به يې ورته داسې مواردو کې موضعګيرې وکړه، چې هغه به د(عنکبوت ) دځالې غوندې بې مقاومته او بې ځواکه وو،خوچې کله دهغه صالح خلف يا ځاى ناستى وټاکل شو،نو بيا يې پر خلاف دپروپاګندلهجه بدله کړه اودخپلو زهرجنو تبليغاتو ماشين يې ورته داسې عيار کړ،ترڅو داځل طالبان او مشران يې دکاري صلاحيتونونه عاري کړي اودجګړې په ميدان کې دمورال لويدلواو ماتي خوړلوعسکرو جنګي ماشين ته نوې روحيه ورکړي .

نړيوالوته داسلامي امارت دواک کلونه ښه په ياد دي، همدوئ(طالبان ) وو، چې دسياست ،فرهنګ ،محاربي اوټولنيزوچارو په ډګرونو کې لاسته راوړنې له چاپټې ندې اونه يې آن دغرب په شان مغرضونظامونوکومه داسې نقيصه په ګوته کړي، چې هغه دې کوم ډول اصوليت او معنويت ولري، بلکې داسلامي امارت هيوادني او اسلامي خدمات او کاري صلاحيتونه له هيچانه پټ ندي او نه به څوک پرې سترګې پټې کړاى شي .

مونږ پداسې حال کې چې داشغالګرو پرضدداسلامي امارت تر قيادت لاندې جهاداو مبارزه ددې امارت دمشرتابه دمؤمنانه فراست ، جنګي او سياسي نبوغ پايله بولو، په ځغرده دداسې غرب مشربه خلکوالزامات غندو او ورته يادوو، چې زمونږ مشران زمونږ دعقايدو،آرمانونواوغوښتنو بشپړونکې دي، له الله تعالى نه اميد لرو، چې زمونږ دآرمانونو په رڼا کې به يو داسې حکومت جوړکړي، چې ټول اصول اومنل شوي بنيادي ارزښتونه به يې مد نظر نيول شوي وي !






# طالبان کامیاب دي که ناکام؟

قاري سعید

په یوه امریکا پلوي ویب پاڼه کې مې مطلب ولید، چې عنوان یې و( طالبه په والله قسم چې ناکام یې) مقاله مې را خلاصه کړه او په دې نیت مې ولوسته ،تر څو د افغانستان د اوسني جهادي خوځښت طالبانو د ناکامۍ د علتونو او څرنګوالي په باره کې د مقالې د لیکوال په دلائلو ځان پوه کړم.

مقاله مې را ولوسته خو د بریالیتوب او ناکامۍ په باره کې دلیکوال نظر او په لیکنه کې راوړي دلائل یې راته ډیر کمزوري او بې ځایه ښکاره شول. لیکوال په خپل زعم لیکلي وو، چې د افغانستان نیمایي نفوس ښځې دي او ښځې طالبان نه غواړي ،ځکه هغوی ښځو ته حقوق نه ورکوي. دغه راز د لیکوال په باور د افغانستان په پاتې نیمایي نارینه وو کې نیم کوچنیان یا بوډاګان دي ،چې په وضعیت اغیز نلري او نیم نور یې ډیر د طالبانو مخالف او لږ ورسره جوړ دي، چې په دې حساب د لیکوال د خندونکي تحلیل په اساس د افغانستان یوازې ۱۲ فیصده خلک د طالبانو ملاتړي دي او ۸۸ فیصده یې مخالف دي، نو له همدې ځایه لیکوال قسم اخیستی چې طالبان نه شي بریالي کیدلی.

بله دا چې د طالبانو شمیر او امکانات ډیر لږ دي . په مقابل کې یې د دنیا څو ملیارده کافران دي، چې اټومي قوت لري، توغندي او وسلې لري، دا مریکا د یوې کمپنۍ ګوګل یا مایکروسافټ کلنی عائد د طالبانو له ټول اقتصاد څخه په مراتبو زیات دی، نو په دغسې حالت کې به طالبان څرنګه بریالي شي؟؟

د یادې لیکنې د ساده ګړي لیکوال د ظاهر بیني لیکنې په ځواب کې په فکر کې راټېر شول، چې یوه لیکنه ولیکم، تر څو همدغه لیکوال او دغسې نورو ناخبرو او خوبوړو اوبوووړو ته د بریالیتوب فلسفه تشریح کړم. ځکه نن سبا د دنیا ظاهري کش او فش دومره زیات شوی او د مادیت تبلیغاتو داسې زور نیولی، چې انسانان یې له حقیقي هستۍ معنویت څخه غافل کړي دي.د نن سبا زیاتره انسانان د بریا او ناکامۍ د معنی ګانو په خیر هرڅه د مادیت او ظاهري دنیوي تعریفونو له عینکو ګوري، نو ځکه د مهمو پدیدو په معنی او مفهوم کې تیروځي.

بریا کامیابي ته وايي،یا خپل منزل مقصود ته رسیدل چې په عربي کې ورته فوز یا فلاح وايي.کامیابي په دنیا کې د استعمال بیلابیل موارد لري،چې زیاتره یې نسبي دي یعني د یوه محدود کار او مجال په دائره کې کامیابي. لکه په صنف کې کامیابي،په علم کې کامیابي، په ورځنی دنده او روزمره کار کې کامیابي، په کورني ژوند کې کامیابي، په انتخاباتو کې کامیابي، په جګړه کې کامیابي یا داسې نورې نسبي کامیابۍ چې په ورځني ژوند کې را مخته کیږي.

اما کله چې کامیابي مطلقه ذکر کوو. نو مراد مو ترینه حقیقي او په الهي امتحان کې کامیابي وي.دا هغه کامیابي ده چې څوک د خپل ژوند په سفر کې یعني له ولادت او مکلفیت له مرحلې څخه د مرګ تر وخت پورې زندګي په داسې ډول تیره کړي چې په پای کې د الله تعالی حضور ته په داسې حال کې ورشي چې د ژوند په آزموینه کې بریالی راوتلی وي، د بندګی او مکلفیت ابتلاء یې په ښه توګه انجام کړې وي، د الله تعالی د اوامرو امتثال او له نواهیو څخه یې پرهیز کړی وي.دا کس نو واقعي کامیاب او فائز دی او دا هماغه کس دی چې د قیامت په ورځ د الله تعالی په حضور کې کله چې د انسانانو د ژوند د امتحان نتائج اعلانیږي. دده لپاره به د خوښۍ او سربلندۍ ورځ وي که څه هم په دنیا کې مغلوب، مقهور او په ډیر مصیبت ځپلي حالت کې اوسیدلی وي.

نو د واقعي کامیابۍ د ارزولو لپاره معیار دادی چې یو څوک د قرآن د غوښتنو او اسلامي شریعت په محک باندې وارزول شي چې آیا موقف او کردار یې په شریعت برابر دی او کنه؟ که یې موقف او کردار له شریعت سره برابر و بیا که ددنیا تر ټولو کمزوری، تر ټولو ځپل شوی او په ظاهري لحاظ که تر ټولو مغلوب څوک هم وي کامیاب دی. بریالی دی او عاقبت یې د فوز او فلاح دی.

راځئ یو څو مثالونو ته غور وکړو. حضرت انس رضی الله عنه روایت کوي چې نبی علیه السلام ته د یوې قبیلې خلک راغلل چې له موږ سره صحابه کرام واستوه ،چې موږ ته دین راوښیي. نبی علیه السلام ورسره اویا تنه صحابه کرام واستول چې د حضرت انس ماما حرام بن ملحان رضی الله عنه هم پکې و. ددغې قبیلې خلکو غدر وکړ او دغه صحابه کرام چې د قران کریم قاریان وو، په یو ځای کې یې محاصره کړل او بیا یې ټول په شهادت ورسول. په دوی کې حضرت حرام بن ملحان رضی الله عنه چې کله یوه کافر د شا لخوا په نیزه وواهه او د مخ خواته ترې نیزه ووته نو له شهادت وړاندې نوموړي یوازې د الفاظ په خوله راوړل( فزت و رب الکعبة) د کعبې په رب قسم چې کامیاب شوم.

څرنګه چې شهید ته د شهادت په مهال جنت ښودل کیږي نو دغه صحابي شاید د جنت په لیدو دغه الفاظ ویلي وي.خو مطلب دا چې دغه مظلوم صحابي له ټول مظلومیت سره سره ځان بریالی وباله او په دې یې قسم هم واخیست.

اوس که ددغو صحابه کرامو ماموریت ته د دنیوي ظاهري نظر له زاویې وګورو نو دوی خو په ظاهري نظر مغلوب په نظر راځي. ځکه دوی د دعوت لپاره لیرل شوي وو خو مخکې له دې چې ټوک اسلام ته دعوت کړي ټول شهیدان شول. اما که معنوي اړخ ته یې وګورو دوی ټول کامیاب دي. ځکه دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم امر په ځای کړ، د قران د خدمت په لاره کې ظلما او غدرا ووژل شول، نو په دې دنیا کې اګر که مغلوب او مظلوم معلومیږي مګر د الله تعالی په نزد بریالي او کامیاب دي نو ځکه دغه صحابي هم په قسم سره دخپلې کامیابۍ خبره کوي.

بل مثال: نن سبا موږ د محرم الحرام په میاشت او د عاشوراء په ورځو کې قرار لرو. د عاشوراء ورځ موږ ته د کربلاء پیښه او د حضرت حسین رضی الله عنه تاریخي کارنامه رایادوي چې د ټول امت لپاره د یوه تاریخي سبق حیثیت لري.

حضرت حسین رضی الله عنه له محدود شمیر اهل بیتو سره د خپل وخت د جابر او نا اهله حاکم یزید د بالادستۍ او ظلم په مقابل کې ودرېد او د کربلاء په میدان کې له خپلو ټولو ۷۲ ملګرو سره په شهادت ورسېد.اسلامي تاریخ او مسلمانان چې د کربلاء د جګړې په اړه پریکړه کوي نو داسې نه وایي چې حضرت حسین رضی الله عنه شکست وخوړ. بلکې امت په دې متفق دی چې هغه بریالی شو. ځکه هغه امت ته یو تاریخ پرېښودچې د جابرانه ملوکیت او زبردستۍ په مقابل کې باید مسلمان سرټیټی ونه اوسي. هغه که ظاهرا قتل شو مګر په واقع کې کامیاب او برحق شهید دی.

نو د طالبانو یا د افغانستان د اسلامي امارت د مجاهدینو د اوسني جهاد په اړه هم که پریکړه کوو.لومړی خو که د جهاد وروستیو بریاوو، د مجاهدینو اخلاص، افرادي قوت او اتحاد، د اولس ملاتړ اوپه اتیا فیصده خاوره باندې حاکمیت ته که وګورو او بالمقابل ددښمن اختلاف او تزلزل ته نظر کوو الله تعالی ته امید شته چې د روانې جګړې نهایي بریا د مجاهدینو ده او کفر به د پخوا په شان مختوری او مغلوب تښتي.

او که خدای نخواسته د طالبانو په لاس د موجوده کفري لښکرو مخامخ شکست مقدر نه وي دا چې مجاهدین په حقه لاره روان دي. موقف او دریځ یې اسلامي دی، په دې عصر- الفتن کې یې تر ټولو سخت عبادت جهاد ته ملاتړلې او د شهادت او فتحې په امید جنګیږي یوازې همدا موقف یې هم د بریا موقف دی ځکه چې د الله تعالی امر یې په ځای کړی او د شیطان په دام کې نه دي لویدلي.

نو مسلمانان باید د کامیابۍ او ناکامۍ په حقیقي فلسفه سم سرخلاص کړي او بیا قضاوت وکړي.

و ما علینا الا البلاغ

# وحدت ملی یا شرکت سهامی؟

ابوصهیب حقاني

اشرف غنی در ابتدای کارزارهای انتخاباتی اش همیشه یک جمله را زیاد تکرار می کرد اینکه حکومتی که صاحبش شود هرگز به شرکت سهامی تبدیل نخواهد شد که هر کسی در آن صاحب سهم مشخص بوده و کارها بر خلاف اولویت یک نظام ایده آل به پیش برود؛ اما بعدا که با داکتر عبدالله بعد از جنجال های زرگری انتخابات نمایشی (سال ۱۳۹۳ هش) به دستور و وساطت مستقیم امریکا و مقامات ارشد آن کشور من جمله جان کیری به توافق به اصطلاح سیاسی مبنی بر تشکیل حکومت وحدت ملی تن داد؛ آن حکومت نه تنها شرکت سهامی نشد بلکه با اشتراک متناقض دو فرد متخاصم تبدیل به یک شرکت سهامی جنجالی شد که حجم معاملات پشت پرده را الله بهتر می داند که این دو شخص تا کجا و چگونه به تجارت وزارت خانه ها، ریاست ها، سفارت ها و ولایت ها پرداختند.

در تازه ترین مورد اما، تلویزیون یک به شواهدی دست یافته که نشان از اوج معامله گری اشرف غنی و عبدالله بر سر تقسیم قدرت دارد و اینکه حکومت نام نهاد وحدت ملی مصداق واقعی شرکت سهامی بوده و این گفته یک اتهام محض نیست بلکه یک حقیقت انکار ناپذیر است؛ و همه چیز همانطور که حدس زده می شود نصف نصف و پنجاه پنجاه بین دو شریک قدرت و پایین تر از آنها بین سایر افراد معامله گر و سود جو عملی شده و هر کسی به سهم مورد نیاز خود از این شرکت سهامی دست یافته است؛ اما جالب اینجاست که داکتر عبدالله با وجود آنکه در انتخابات نمایشی (سال ۹۳) شکست خورده به حساب می آمد و به زور امریکا و جیغ و فریادهای خود بر سر اشرف غنی تحمیل شد و اشرف حضور او را اکراها و از سر جبر، به عنوان یک شریک صاحب اختیار قبول کرد (با آنکه) ظاهرا به سهم خود نیز رسیده ولی باز هم ادعای کم لطفی و بی توجهی از سوی اشرف را کرده و طوری وانمود می کند که گویا اشرف غنی حق او را خورده و چیزی به وی نداده است در حالیکه حقیقت و شواهد نشان می دهند که هم اشرف غنی و هم عبدالله اجازه هیچگونه مداخله در امر و فیصله مقطوع امریکایی ها درباره امتیازات شان نداشته و همه وزارت ها و ریاست ها و سایر نهادهای حکومتی (۵۰/۵۰) با حضور و رضایت قلبی هر دو شریک قدرت میان شان تقسیم

گردیده و امریکا هر دوی شان را راضی و خشنود کرده است.

طبق شواهد به دست آمده همینطور سر و صداهای گاه و بیگاه (معاون اشرف غنی) جنرال دوستم نیز بیجا بوده چونکه در شرکت سهامی به وی نیز حق و امتیاز لازم داده شده و رضایت او را حاصل کرده اند؛ اما ظاهرا همه اراکین فاسد وحدت ملی و دست نشانده های امریکا به حق شان کمتر از یک رئیس جمهور قناعت نداشته و همه شان همزمان انتظار دارند نفر اول حکومت وحدت ملی باشند و نه فرد پائین رتبه در شرکت سهامی.

خلاصه تقسیم قدرت در شرکت سهامی به روایت تلویزیون یک به شرح ذیل است:

وزارت ها؛ سهم غنی ۱۳ وزارت / سهم عبدالله ۱۲ وزارت

ولایت ها؛ سهم غنی ۱۵ ولایت / سهم عبدالله ۱۳ ولایت

سفارت ها؛ سهم غنی ۱۳ سفارت / سهم عبدالله ۵ سفارت

ریاست های مستقل؛ سهم غنی ٦ ریاست / سهم عبدالله ۰

پس از تقسیمات کلی فوق، باز هر کدام از اشرف غنی و عبدالله در وسط خودشان شریکان قدرت یا سهام داران تجاری دارند که وزارت ها، ولایت ها، سفارت ها، ریاست ها و سایر نهادهای حکومتی را طبق جایگاه و مرتبه آنها در نزد اشرف و عبدالله، مالک می شوند؛ مثلا:

از جنرال دوستم، کریم خلیلی، سروردانش، پیر سید احمد گیلانی، سید منصور نادری، حنیف اتمر، سلام رحیمی، معصوم ستانکزی، نادر نادری، اکلیل حکیمی، حاجی دین محمد، علی احمد جلالی، حکمت خلیل کرزی و اکرم خپلواک، به عنوان شرکای قدرت اشرف غنی؛ و از عبدالهادی ارغندیوال، محمد محقق، انجنیر محمد خان، عطا محمد نور، صلاح الدین ربانی، ادیب فهیم، گل آغا شیرزی، زلمی رسول و امان الله گذر شرکای عبدالله در شرکت سهامی وحدت ملی نام برده می شوند.

و اینگونه است که فساد در این اداره به اوج خود رسیده و نارضایتی ها و شکایت بازی ها گسترش و سر و صدا ها و آواز های ناخشنودی روز به روز بلندتر می شوند.

به امید ذلت امریکا و عزت مومنین.




# فیس بوک داسرائیلو په لومو کې

**حسن زوی**

دټولنیزو اړیکو مشهوره ویب پاڼه فیس بوک هم داسرائیلو دلاس آله وګرځېده او له دې وروسته به دټولو هغوفلسطیني ځوانانو ادرسونه اسرائیلي دولت ته ورکوي چې دمظلوموفلسطینیانو پرضد داسرائیلو دروانو دظلمونو نه نړۍ خبروي.

اوس دفیس بوک له لوري اسرائیلو ته دورکړل شوو معلوماتوله مخې اسرائیلي امنیتي اداري هغه ټول فلسطیني سړي او مېرمنې نېسي چې داسرائیلو دظلمونو په اړه يې معلومات خپاره کړي او نړۍ يې ترې خبره کړي وي چې پدې لړ کې په همدې تازه ورځو کې ۱۸۵ نر او ښځینه ځوانان نیول شوي او اسرئیلي زندانونو ته وړل شويدي.

دفلسطین داطلاعاتو مرکزي اداري ویلي دي چې اسرائیلي فوځیان او نوري امنیتي اداري دټولو هغو فلسطیني ځوانانو دنیولو لپاره پلان جوړوي چې فیس بوک کاروي.

(( یعوووت اهرونوت )) نومې اسرائیلي جریدې لیکلي دي چې داسرائیلو دفوځ یوه څانګه دټولنیزو اړیکوټولې ویب پاڼې په ټولیزه توګه او فیس بوک په ځانګړي ډول له نېږدې څاري او داسرائیلو دټولو مخالفو ځوانانو ادرسونه په نښه کوي اوبیا داسې ځوانان نیسي اوزندانونوته يې وړي .

دفلسطین داطلاعاتو وزارت وایي چې داسرائیلي دولت له لوري دزندانونو دمسئولینو په نوم په یو تازه جاري شوي فرمان کې راغلي

دي چې يو فلسطيني ځوان دې هم ترهغې لـه زندان نه، نه پرېښودل کېږي ترڅـو چـې تـرې دفيس بـوک دنـه کـارولو قسـم خـط نـه وي اخستل شوی.

دمشهورې برتانوۍ جريدې گـارډين سره په مرکه کې اسرائيلي وزير گيلاد ايـردان منلـی ده چې امريکاته دتللي اسرائيلي دولتـي پـلاوي او فيس بوک ادارې ترمنځ دکاميابو مذاکراتو په نتيجه کې ددې ادارې يـو پـلاوی اسرائيلـو تـه راروان دی ترڅو داسرائيلو اوددې پلاوي ترمنځ دلته داتړون رامنځته شي چې فـيس بـوک بـه ټـول داسرائيلـو ضـد فلسـطينيانو ادرسـونه بندوي.

هارټز نومې اسرائيلـي جريـدې منلـې ده چې فيس بوک دتړون درامنځته کېدو دمخــه لا اسرائيلو ته ټول هغه ځوانان ورپه گوتـه کـوي چې داسرائيلو ضد مواد خپروي ؛ پدې کار سره اسرائيلو ته دهغو ټولـو فلسـطينيانو نيـول او زندانونو ته بوتلـل اسـان شـويدي کـوم چـې دفيس بوک لـه لارې داسرائيلـو دظلمونـو نـه نړيوال خبروي.

يروشلم پوسـټ نـومې داسرائيلـو يـوې جريدې کې عامربين ربـی نـومې يـو يهـودي ځوان اعتراف کړيدی چې ددې کال په پيـل کـې داسرائيلو ددولت او فيس بوک ادارې ترمنځ يـو پټ تړون شوی و؛پدې تړون کـې دفـيس بـوک ادارې منلــې ده چــې دفــيس بــوک لــه لارې داسرائيلو پرضد کرکه خپرېـږي او فلسـطينيان پدې بريالي شويدي چې اسرائيل نـړۍ تـه يـو قاتل او غاصب هېواد معرفي کړي نو ځکه پدې اتفاق رامنځته شو چـې داسرائيلـو شـتون تـه دخطرونو رامنځته کونکـو ټولـو فلسـطينيانو ادرسونه بايد بند کړی شي.

نامتو فلسطيني جورنالست اعصام الحـق وايې چې فلسطيني ځوانان خو يـواځې دخپـل ټاټوبي په اړه تبصرې ديوبـل سره شريکـوي او دهماغه ظلمونو عکسونه او ويډيوگانې فـيس بک ته پورته کوي کوم ظلمونه چـې اسرائـيلي عسکر کړي وي.

که دا ظلمونه دومره سـتر وي چـې پـرې داسرائيلو شتون ته خطرونه راپيـدا کېـږي نـو بايــد چــې اسرائيـــل دا ســـتر ظلمونـــه بنــد کړي؛فلســطيني ځوانــان بــه خپـل کــار روان ساتي؛ افسوس دفيس بوک ادارې پرحـال چـې خپله بې طرفي يې ونه ساتلای او داسرائيلو په طرفدارۍ يې ځان داسرائيلو په ټولو ظلمونو او وحشتونو کې ځانونه شريک کړل.

دفلسطين داطلاعــاتو دمرکـزي ادارې لـه لورې په خپورشوي تازه راپور کـې راغـلي دي چې داسرائيلو دامنيتي اداروغړي زنـدانونو تـه ورځي او په قتل اود قتل اقـدام کـې لـه تورنـو تنانو پرته ټولو فلسطيني زنـدانيانو تـه وايـي



چې تر هغې به نه پرېښودل کېږي ترڅو يې په قسم خط کې نه وي منلې چې له دې وروسته به فيس بک نه کاروي.

((فلسطين سټډي سنټر ))نومې مرکز نه په خپور شوي يو تازه راپور کې راغلي دي چې په يوې اوونۍ کې دزرو نه دزياتو فلسطيني ځوانانو نه په اسرائيلي زندانانو کې دفيس بوک دنه کارولو قسم ليکونه اخستل شوي او له زندانانو خوشي شويدي او کومو فلسطيني ځوانانو چې دقسم ليکونو له ورکولو انکار کړی هغوئ بېرته توقيف خانو ته استول شويدي.

القدس نومې عربي جريدې په خپل يو تازه راپور کې ليکلي دي چې دفيس بوک اداره هم دفلسطينيانو پرضد داسرائيلو ددولت سره يوځای شويده او دازاد فلسطيني دولت د دوه سوه زرو نه زياتو طرفدارانو ادرسونه يې بند کړيدي.

دامريکا مشهورې جريدې سان فرانسکو کرونيکا کې راغلي دي چې داسرائيلو جاسوسې شبکې شن بيت له لورې په يو پټ راپور کې راغلي دي چې که داسرائيلو پرضد دفلسطينيانو دفيس بوک دکارولو مخنيوی ونه شي نو په ټولې نړۍ کې عموماًاو په ځانګړي ډول اروپا کې به دازاد فلسطيني دولت دجوړيدو طرفداران زيات او اسرائيل به لا ډېر بدنام شي.

پدې اړه داسرائيلو لومړي وزير بن يامين نتن ياهو دخپلې کابينې سره دمجلس نه پس ددولت دوه وزيران امريکا ته واستول چې هورې يې په مينلوپارک کې دفيس بوک مرکزي دفتر کې ددې اداري له مشرانو سره خصوصي ناسته وکړه ؛ددې اداري نه يې دټولو فلسطينيي مسلمانانو دادرسونو دبندولو غوښتنه وکړه؛دفيس بوک اداري ددوئ دا غوښتنه ومنله او ورته يې دهر ډول مرستې وعده ورکړه .

ديادولو وړ ده چې دفيس بوک باني مارک زوخر برګ يهودي دی او داسرائيلو سره يې ټل خپله خواخوږي ښکاره کړيده .

# ششم میزان
# روز نجات کشور

سعید بدخشانی

بلا تردید ششم میزان ۱۳۷۵هجری شمسی در تاریخ افغانستان یک روز سرنوشت ساز وتاریخی تلقی میشود.زیرا در این روز یک صفحه سیاه تاریخ کشور ورق زده شد،دوره های منحوس هرج ومرج تنظیمی ،قتل وغارت خاتمه داده شد وپرچم سفید پرافتخار مزین به کلمه توحید برفراز قصرها وادارات دولتی در پایتخت به اهتزاز درآمد.

آری!امارت اسلامی درشرایط نهایت حساس وخلاء قیادت اسلامی سالم روی صحنه آمد،هنگامیکه درکشور یک رهبریت سالم ومحوری وجود نداشت تا که ملت تحت زعامت وحمایت آن زیست،واز مزایای اسلام،عدل وانصاف بهره می برداشتند،خلاصه همچو یک حرکت را ملت افغان در خواب تصور میکردند،لکن حرکت طالبان این آرمان وخواب مردم کشور را به حقیقت مبدل ساخت،امارت اسلامی نه تنها که روحانیون وحلقات مذهبی ودینی کشور را عزت و افتخار بخشید بلکه تمامی حرکت های جهادی و اسلامی اهل سنت والجماعت جهان اسلام به این حرکت افتخار می ورزیدند.

طالبان ونابودی فساد:

پیش از ظهور حرکت خود جوش اسلامی طالبان تحت قیادت امیر محبوب وشایسته ملامحمد عمرمجاهد رحمه الله، ملت افغان درگیر جنگهای خانومان سوز داخلی،قومی،سمتی، نژادی وتنظیمی بودند که دراین جریان تمام شهرها،مخصوصاَشهرکابل به ویرانه مبدل شده بود،میلونها شهروند ا فغان کشته،مجروح،جلاوطن ویاهم مجبور به ترک خانه وکاشانه خویش وراهی دیار اغیار وهجرت شدند،همینگونه افغانستان نه تنها که فاقد یک اداره واحد بود بلکه کشور محل بُزکشی وزمام ملت همانند گوساله‌ء زیر پای هفت چاپه انداز(هفت تنظیم)و میدان تاخت وتاز کشورهای مغرض اعم از شرق وغرب گردیده بود.

دیری نگذشته بود که خدای عزوجل دعاء ملت مظلوم را اجابت کرد،حرکت اسلامی طالبان تحت زعامت امیر کبیر ومخلص ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله به میدان آمد واین حرکت برزخم ملت رنج دیده مرهم گذاشت.

حرکت اسلامی طالبان تحرکات جهادی خویش را از قندهار آغاز وبلادرنگ اقدام به عملی وتطبیق فرامین الهی نمودند،این حرکت مخلصانهء برق آسا ودرمدت کمی اکثر اراضی کشور را فراگرفت وبساط جبر ،ظلم،ملک طوایفی،تعصب،قوم گرای ،پاتک سالاری وجنگ های داخلی وذات البینی را دور و نظام شرعی را حکم فرما ساخت،عاقبت ملت ستمدیده از شرواعمال نافرجام غارتگران وچپاولگران نجات یافته وتحت پرچم پرافتخار اسلام ویک نظامی کاملاً اسلامی سکونت میکردند.

قیام طالبان برای نظام اسلامی بود.

یگانه هدف وآرمان این حرکت تنفیذ نظام اسلامی واحیاء خلافت های ازدست رفته اسلامی بود که آنرا تحقق بخشیدند وبرجهانیان بازگو کردند که در امت محمدی صلی الله علیه وسلم کسانی وجود دارند که در راستای زنده نمودن نظام اسلامی وتطبیق شریعت از هیچ نوع قربانی دریغ نخواهند ورزید.

این داعیه ومقصد بزگ اسلامی یگانه مرامی بود که کفار وهمپیمانان نظریاتی وفکری شان که در فروپاشی خلافت های اسلامی نقش داشتند نمیخواستند همانند خلافت های اسلامی امارت اسلامی دیگری در روی گیتی ظهور ومسلمانان را بخود جلب نماید.

بلا ریب جهان کفر،ملل متحد که یک نهاد ساخته وپرورده استکبار جهانی(امریکا)میباشد را تقویت وپشتیبانی میکنند،همین ملل متحد کفری بود که مسلمانان را بعناوین مختلف پارچه پارچه وسرزمین های اسلامی را بلحاظ جغرافیوی به کشورهای خورد و کوچک تقسیم نمود،همینگونه با افکار ضد اسلامی وبشری خویش قلوب مسلمانان را تا اندازهء غافل وبسوی لهو ولعب دنیوی وکفری مایل ساختند تا که مسلمانان بخصوص نسل جوان تصور یک قیادت واحد اسلامی جهان شمول واعاده امارت های اسلامی را نکنند.

خداوند مکمل نور و دین خود است اگر چه کافران بد پندارند،همین بود که الله بی نیاز مسلمانان جهان به ویژه ملت مجاهد افغان را زیر پرچم پرافتخار اسلام و امارت اسلامی جمع کرد،واقعاً این حرکت شریعت، عدالت وامنیت را در قلمرو خویش تطبیق نمودند.

لذا جهان کفر بامشاهده امنیت،عدالت، ایثارگری واخوّت اسلامی وتجمع مجاهدین آنهم در لباس صاحبه ویاران راستین پیامبر بزرگ اسلام خوف زده وپریشان شدند که اگر ما به نابودی این حرکت اسلامی نپردازیم عنقریب دیموکراسی ونظامهای خود ساخته بشری وکفری ما از بین میرود همین بود که با دسایس گوناگون گاهی شیخ اسامه رحمه الله را بهانه ساختند که برای ماتحویل دهید وگاهی

واقعه یازده سپتمبر در نیویارک را وبهانه های دیگری همانند آن،لکن مقام رهبری امارت اسلامی به ویژه امیرکبیر ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله با کمال شجاعت ،متانت وایمان داری به حرف های غرب گوش نداده ودلیرانه از مسلمانان دفاع نمود، به اسلام وافغانیت افتخار بخشید وامارت خویش را فدای یک شخصیت مجاهد ومبارز مسلمان نمود،وافزود: من در حکمرانی خود چنان تاریخی نخواهم گذاشت که برای افغانان در آینده عار باشد.

بلی!فتح کابل در ششم میزان بدست نیروهای امارت اسلامی از خاطری در تاریخ افغانستان مهم دانسته می شود،که در این روز بی نظمی،چور وچپاول، جنگ های ذات البینی وبساط نابسامانی های نافرجام از پایتخت کشور جمع گردید.وشهروندان کابل طالبان را بحیث نیروی نجات دریافتند،زیرا با ورد مجاهدین امارت اسلامی به کابل همه مفاسد مانند رقصه مرده،سینه بری،میخ کوبی،غارت دارایهای دولتی وشخصی ازبین رفت،ومردم مظلوم از بربریت نجات یافته و نفس راحت کشیدن.

❋ ❋ ❋

# حیران

## «لنډه کیسه»

**حمیدالله حیدرخېل**

له تلاشۍ به دوه سوه متره مخکې نه وم لاړ، ماشومان د سرک په غاړه ولاړ وو، خدای خبر له څه وخته به ولاړ وي خو په سرک د موټرو تلو راتلو له وجې د سرک پورې غاړې ته نه شول پورې کیدلی. ورته رانږدې شوم موټر مې ودراوهٔ سم لا ولاړ نه یم چې تر شا یو موټر هارنګونه راپسې شروع کړل، په لاس مې ماشومانو ته اشاره وکړه،موسکي شول یو بل ته یې لاسونه ورکړل او په کراره د سرک پورې غاړې ته راپورې شول، روان شوم تر شا موټر زما له موټر سره په څنګ شو ښیښه یې ټیټه کړه او په تونده ژبه یې وویل: ته انسان یې که خر چې په سرک باندې ودریدې؟

مخ مې ورواړهٔ دوه تنه وو، ږیرې یې کلې وې، بریتونه یې په شونډو راځوړند وو پکولونه یې پر سرونو وو او ګلان یې په کې ټومبلي وو، شونډې یې له نصوارو ډکې وې او ټوپک ورسره وو. زر مې ځواب ورکړ؛ تاسو ونه لیدم چې څه ته ولاړ وم؟

ټنډه یې نوره هم زیږه کړه سر یې له ښیښې رابهر کړ ژبه یې په شونډه کې راتاوه کړه، ساه یې کش کړه پړوففف شو، د نصوارو په غونډاره یې زما موټر وویشت، له خولې یې لاړې باد شوې په لوړ غږ یې وویل؛ خبرې ډېرې مه کوه !!! چې در کوز شم دا تومیزي درباندې په دا بل لټ اړوم.

ما چې ځواب ته خوله برابره کړه نو موټر بیا نه ؤ یواځې په سرک توره لړه پاتې وه.

حیران دي ته شوم چې دوئ څنګه په تلاشۍ راتېر شول؟

# داسلام غزوات اوسرایا

## دمُرَیسیع یا بَنی المُصطلَق غَزوه

ابوظهیر

مریسیع دیوې چینې نوم دی، چیرې چې د بنی خزاعه قبیلې یوښاخ بنی مصطلق اوسیدل دهجرت په پنځم کال رسول الله ﷺ ته خبر راغی چې دبني المصطلق سردار حارث بن ابی ضرار یو ستر لښکر ددې لپاره راټول کړی دی چې غواړي په مسلمانانو حمله وکړي، رسول الله ﷺ ددې خبر دېخلې لپاره یوتن صحابي بریده بن حصیب اسلمي رضي الله عنه واستاوه، هغه لاړ او بیرته راغی رسول الله ﷺ ته یې وویل: چې خبره رښتیاده، رسول الله ﷺ سملاسي دروانیدو حکم وکړ.

صحابه تیار شول ، دیرش اسونه یې دځان سره کړل چې لس دمهاجرینو وو، اوشل دانصارو ، په مدینه منوره کې یې زید بن حارثه رضي الله عنه ځای ناستی پریښود، دغنیمتونو په طمع لوی شمیر منافقان هم ورسره روان شول حال داچې ددېنه وړاندي هیڅ غزاته نه وولاړ د مطهراتو ازواج نه رسول الله ﷺ دمومنانو مور حضرت عایشه صدیقه رضي الله عنها او حضرت ام سلمة رضي الله عنها ځان سره بوتلې دتریخ پوهانو په قول: دا دوشنبې ورځ وه او دشعبان ۲مه نیټه وه ابن اسحاق وایي: دهجرت ٦ کال و، ځیني وایي: ۴ کال و قتاده، عروه بن زبیر او ابن شهاب زهري وایي: د هجرت ۵کال او دشعبان میاشت وه، موسی بن عقبه، ابن سعد،بیهقي اوحاکم هم داقول غوره بللی حافظ عسقلاني وایي: دا قول ځکه صحیح دی چې پکې د سعدبن معاذ رضي الله عنه ګډون بخاري کې راغلی او له صحیحه روایتونو او معتبرو احادیثو څخه ثابته ده چې سعد بن معاذ رضي الله عنه کله دخندق غزوې نه وزګارشو بني قریظه سره دجنګ په زمانه کې وفات شو، چې دهجرت ۵ کال و اوکه دمریسیع غزوه په ٦ کال شي بیا پکې دسعد بن معاذ رضي الله عنه ګډون څنګه سهي کېدای شي ؟ (تفصیل په فتح الباري کې وګورئ ۷ټوک ۲۳۲مخ زرقاني ۲ټوک ۹٦مخ)

رسول الله ﷺ او ملګري یې دومره لاړل چې په دښمن یې په داسې حال کې ناڅاپه برید وکچې هغوی (دبني مصطلق خلکو) خپل څاروی اوبه کول او دبرید تاب یې را نه وړو تري لس کسان ووژل شول او پاتي نارینه ،میرمني ،ماشومان او سپین ږیري یې ټول ژوندي ونیول شول مالونه یې ( دوه زره اوښان ۵زره وزې) غنیمت شول او د دوه سوه کورنیو وګړي ترې بندیان کړای شول

څیرنه:

داپورته روایت :چې رسول الله ﷺ اوملګرو یې په بني مصطلق قبیلې په داسې وخت کې ناڅاپه حمله وکړه چې هغوی خپلو څارویو اوبه ورکولې.... دبخاري شریف په کتاب العتاق ( ۱ټوک ۳۲۵مخ) کې له نافع څخه روایت شوی او نافع وایي:

حدَّثنی به عبد الله بن عمر وکان فی ذلک الجیش

دا حدیث ماته عبد الله بن عمر بیا کړی دی څوک چې دلښکر سره یوځای وو.

دمحدثینو له نظره یاد روایت په مرتبه دمرفوع متصل کې دی بالفرض که ددې روایت سلسه په نافع هم پای ومومي نو دمحدثینو په اصطلاح ورته مرسل ویل کېږي کوم چې دجمهورو سلفو په نزد حجت دی نه

منقطع، خو دا نده معلومه چې علامه شبلي نعماني په سيرة النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې ( ۱ټوک ۳۸۲مخ) په کوم دليل دي حديث ته منقطع ويلي اوپه دې توګه يې دغيرمعتبر ګرځولو ناکام کوښښ کړی دی دسير دروايت او بخاري دروايت ترمنځ هيڅ تعارض نشته ځکه چې دسير دروايت څخه دومره معلوميږي چې بني المصطلق ددينه خبر وو چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دوی دحملې اراده لري خو دومره نه وخبر چې دومره ناڅاپه به وربانديې حمله کوي څنګه چې دبخاري په روايت کې دي چې کله رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغوی بريد وکړ نو ناخبره او غافل وو

په بنديانو کې دبني مصطلق د سردار حارث بن ابي ضرار لورجويريه هم وه، دغنيمت مالونه چې کله په غانيمينو وويشل شول جوريه ثابت بن قيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په برخه ورغله، ثابت بن قيس I جويريه مکاتبه وګرځوله يعنې که دومره مقدار پيسې راکړې زه به تا ازاده کړم.

حضرت جويريه (رض) درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضره شوه او عرض يې وکړ:

دالله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله: تاته معلومه ده چې زه جويريه دبني المصطلق دسردار (حارث بن ابي ضرار) لوريم زما داسارت حال له تاڅخه پټ ندی په ويش کې دثابت بن قيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په برخه رسيدلې يم او هغه مکاتبه ګرځولې يم، دکتابت دبدل لپاره زه له تا څخه داعانت او مرستې ارزولرم!

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل:

زه تاته ددې څخه غوره څيز ښيیم که غواړې چې ستا لخوا واجب الاداء پيسې زه اداء کړم او تاازاده دې کړم اوبيا پخپله نکاح کې واخلم څنګه ته راضي يې؟

حضرت جويريه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفرمايل:زه راضي يم (رواه ابو داود کتاب العتاق )

له پيله هم د جويريه ارزو داوه چې ازاده کړای شي اتفاقاً دهغې پلار حارث بن ابی ضرار هم درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ:

زه دبنی المصطلق سردار يم زما لور وينزه نشي-کيدای، ته هغه ازاده کړه!

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل: ښه نده چې زه دا معامله پخپله دجويريې خو ښې ته پريږدم چې هره پريکړه کوي ماته دمنلو وړ وي، حارث پورته شو جويريې ته يې وويل:رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستاخوښې ته معامله پريښوده ...

جويريه رض وويل: زه الله او دهغه رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غوره کوم ( رواه ابن منذروسنده صحيح) (الاصابه ۴ټوک ۲۶۵)

دعبد الله بن زياد څخه روايت دی چې دحضرت جويريه پلار حارث بن ابي ضرار ځان سره زيات اوښان مدينې منورې ته راوستل څو دفديې په ورکولو خپله لور ازاده کړې او دوه اوښان چې نهايتي عمده وو، په يو چول کې پټ کړل چې دځان سره به يې بيرته په تلو کې بوزي کله چې مدينې ته درسيدو وروسته درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وړاندې حاضر شو او اوښان يې وړاندې کړل رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

هغه دوه نوراوښان چيرې دي ، چې تا په فلاني ځای کې پريښودل ؟

حارث وويل:

اَشهَدُ اَنک رسول الله

زه ګواهي ګوم چې بيشکه ته دالله جَلَّ جَلَالُهُ رسول يې!

داالله جَلَّجَلَالُهُ پرته بل هيڅوک دهغواوښانو څخه نه خبر و، نوتاته په اړه يې الله جَلَّجَلَالُهُ خبر در کړی دی.( اصابه ترجمه حارث بن ابي ضراررض)

غرض دا دی چې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ حضرت جويريه رضی الله تعالی عنها ازاده کړه او پخپله نکاح کې يې واخستله کله چې صحابه خبر شول نو هغوی هم دبني المصطلق ټول قيديان په دې ازاد کړل چې بني المصطلق درسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ سره دخسر گنی له پلوه رشته لري دمومنانو مور حضرت عايشې صديقې رضی الله تعالی عنها فرمايل:

ما د خپل قوم په حق کې دجويريه پرته بله هيڅ ميرمن دومره دبرکت درلودونکې نده ليدلې چې په وجه يې په يوه ورځ کې سل کورنۍ ازادې شوې (کتاب العتاق ۲ټوک ۱۹۲مخ)

داچې په دې سفر کې منافقينو هم گډون لاره، هغوی په هره موقع دخپل شرارت او فتنې خورولو کوښښ کاوه، لکه داوبو په يوه چينه ديومهاجر او يوتن انصاري ترمنځ جنگ پيښ شو، مهاجر انصاري په لغته وواهه مهاجر دخپلې مرستې لپاره ديا للمهاجرين ناره دخولې وويسته او انصاري د يا للانصار ناره ووهله کله چې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دا غږونه واريدل نو وي فرمايل:

دا دجاهليت غږونه دچاوو؟ خلکو عرض وکړ: داالله رسوله يوتن مهاجر يو انصاري په لغته وواهه رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل:

دَعُوهَا فَأِ نها مُنتِنَة

دا خبرې پريږدئ په تحقيق سره دا ناوړه او بدبويه دي.

دمنافقينومشر عبد الله بن ابی بن سلول ته هم دخبرو چانس پيداشو هغه وويل:

دا( مهاجرين) په موږ واکمن شول، په خدای سوگند چې موږ بيرته مدينې ته ستانه شو عزت لرونکي به ذليلان وباسي.

کله چې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ته خبر ورسيد حضرت عمر رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ عرض وکړ:

يار سول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ماته ددي منافق دسرپريکولو اجازه وکړه

رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل:

پريږده يې( خلک په رښتيني حقيقت نه پوهيږي) گومان به کوي چې محمد صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ خپل ملگري قتلوي.

عبد الله بن ابی بن سلول رښتيا هم د رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ له ملگرو څخه نه و، بلکې ترټولو سخت دښمن يي و، خو په ظاهري صورت او شکل درسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دصحابه وو پشان و، او په ژبه درسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دملگرتيا مدعي و، له دې وجې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ يي دقتل اجازه نه ورکوله يعنې دمخلصانو صحابه وو سره دتشبه په وجه دمرگ څخه خلاص شو مولانا محمد ادريس کاندهلوي ليکلي: دنيکانو خلکو سره تشبه اگرکه منافقانه هم وې خو بيکاره او له گټې خالي نده ...

ددې مسئلې نور تحقيق دمولانا قاري محمد طيب رَحِمَهُٱللَّهُ (د دارلعلوم ديوبند پخوانی مهتمم) په غوره تصنيف التشبه فی الاسلام کې شته هغه په ياده موضوع دعالمانه تحقيق له پلوه لامثال دی.

نوربيا...

# دجهـاد فقهي مسـائل

[۳۱مه برخه]
[مفتي ابومحمد حقاني]

## کفارو سره دجګړې د اختتام اسباب:

## اسـلام منل، جـزیه ورکول، یا سـوله!

### دسـولې دتـړون پایـلې:

دفقهاوو‌تر مینځ دې کې اختلاف نشته، بلکې اتفاقي خبره ده ،چې کله دسـولې هـوکړه لیـک یـا تړون لاسلیک او تـول شرطونـه یـې بشـپړشي ،نـو دهوکړه لیک یا دسولې دتړون دواړه لورې یو له بل څخه مصؤن او ددوئ ځانونه ،مالونـه اواهـل بیـت دتعـرض څخـه خونـدي شـول ،دواړه معاهـدین او سوله وال ددې اجازه نلري، چـې دمقابـل لـورې پـه ځان ،مال یا نوروشیانو تعرض وکړي اوپـایمال یـې کړي ،دمسلمانانو په امام یا هغه ائمه وو باندې چې دده له مړینې یـا عـزل نـه وروسـته دده ځایناسـتې وي، دا لازم ده، چـې دمسـلمانانو لـه اذیـت څخـه ددې معاهـدینواو دسـولې بـل لـورې بانـدې بریـد ونکړي،همداسې به یې دارالاسلام کـې داهـل ذمـه وو له بریدونو څخه هـم سـاتي ،ددې لپـاره دلیـل دا آیت کریمه دی چې : { يَـا أَيُّهَـا الَّـذِينَ آمَنُـوا أَوْفُـوا بِالْعُقُودِ } (سورة المائدة / ۱ .) ، وَقَوْلِهِ عَزَّ مِنْ قَائِلٍ : { فَأَتِمُّوا إِلَـيْهِمْ عَهْـدَهُمْ إِلَى مُـدَّتِهِمْ } (سـورة التوبـة / ۴ .) دې مذکورو کریمه آیتونو کې الله تعالی دعهـد او ژمنودپوره کیدو او پرې دوفا حکم کړی او ددې تعمیل واجب دی ،نو که چیرته احیانا مسـلمانان یـا اهل ذمه دمعاهدو کفارو څه شئ تلف کړي، نو بیا دا واجـب ده، چـې دا متلف(فـاعلي حالـت ) ددې تلف شوي تلافي وکړي او ضمان یـې تأدیـه کـړي، مذکورمسایل پـه (الموسـوعة الفقهیـة) کـې مفصـل لیکل شوي دي .

اوس داخبره هم واضح کول ضرور دي، چـې دکفارو سره دهـوکړه لیـک یـا مصـالحت وروسـته داهـل حربـو څخـه دمعاهـدینو یـا مقابـل لـورې حمایت یا ساتنه همداسې ددوئ بعضي- خلـک لـه نورو بعضو څخه ساتنه هم پر مسـلمانانوواجب ده کـه څنګـه ؟دې ځـواب کـې (الموسـوعة الفقهیـة

الکویتیة )ددي (مغني المحتاج ۴/ ۲۶۰ ـ ۲۶۱ ـ ۲۶۲، تحفـة المحتـاج ۹ / ۳۰۷ ، شرح روض الطالـب ٤ / ۲۲۵ ، المغني ۸ / ٤٦٣ ، شرح السیر الکبـیر ۲ / ۸۲ ، البـــدائع الصـــنائع۷ / ۱۰۹ ، الدســـوقي ۲ / ۱۸٤ ، جـــواهر الإکلیـــل ۱ / ۲۷۰ ، کشـــاف القنـــاع ۳ / ۱۱۵ .)ګنیـو مختلفوحوالـو اواهـل مـذهبو دکـره علماوو په کتابونو له حوالي وروسته داسې ځواب لیکل شوی : أَمَّا حِمَایَتُهُمْ مِـنْ أَهْـلِ الْحَـرْبِ ، وَکَـذَا حِمَایَةُ بَعْضِهِمْ عَنْ بَعْـضٍ فَـلا تَلْـزَمُ الْمُسْـلِمِینَ ، لأَنَّ الْهُدْنَةَ الْتِزَامُ الْکَفِّ عَنْهُمْ فَقَطْ لا حِفْظُهُمْ ، بِخِـلافِ عَقْدِ الذِّمَّةِ حَیْثُ نَدْفَعُ عَـنْهُمْ مَـا نَـدْفَعُ عَـنْ أَنْفُسِـنَا. ژ:یعنې له محـاربو کفـارو څخـه ددوئ سـاتنه پـر مسلمانانولازم نده، همداسې ددوئ دځینـو نورونـه ددوئ حمایت واجب ندی،داځکه چې مهادنـه یـا مصالحه یوازې ددې لپاره کیږي، چې مسـلمانان بـه ورته تکلیف نـه رسـوي ،نـه ددې لپـاره چې ددوئ ساتنه به هم مسـلمانان کـوي، البتـه داهـل ذمـه وو مسئله دلته ددوئ نه څه تفاوت لري ،او هغه داسـې چـې دمعاهـدو ذمیانوسـاتنه دمسـلمانانوپه شـان واجب ده او دا له محاربینو څخه بیل حکم لري .

همداسې احناف علماء رح فرمایي : چې کـه چیرته دموادعینو یـا معاهدینوڅخـه کومـه ډلـه یـا قبیله داسې یوې سیمې یا علاقې ته لاړه ، چې هلتـه مسلمانان اوسیدل، خو دهغوئ سره داسې کوم عهد امان ددوئ په برخه کې نه و شـوی او هغـوئ غـزا کوله ،نوهغه مسلمانان به هـم دوئ تـه تکلیـف نـه رسوي او ددوئ امان به عام وي ،لکه الموسوعة کې داسې عبارت رانقل شوی : وَقَدْ نَصَّ الْحَنَفِیَّةُ عَلَى أَنَّهُ لَوْ خَرَجَ قَوْمٌ مِنَ الْمُوَادِعِینَ إِلَى بَلْـدَةٍ أُخْـرَى لَیْسَـتْ بَیْنَهُمْ وَبَیْنَ الْمُسْلِمِینَ مُوَادَعَةٌ ، فَغَزَا الْمُسْـلِمُونَ تِلْـكَ الْبَلْـــدَةَ ، فَهَـــؤُلاءِ آمِنُـــونَ لا سَـــبِیلَ لأَحَـــدٍ عَلَیْهِمْ..............فقهاوو فرمـایلې :چـې همداسـې که چیرته یو څوک دارالموادعة ته ننوت او بیا ترې راووت او دارالاسلام ته راغی، نومسـلمانانوته ددې اجازه نشته ،چې اذیت ورته ورسوي ،خوکه چیرته له دارالموادعة څخـه نیـغ دارالحـرب تـه لاړ او بیـا وروسته دارالاسلام ته را ننوت ،نو دې وخت کې دا نیول کیدا ی شي او دا بیا مال فئ کې ګرځي،هم یې وژلای او هـم یـې اسـیر کـولای شي.ځکـه دادې وخت کې حربي دی او دامـان دحکـم لانـدې نـدی داخل .

که چیرته دنوروسیمو خلکوله دارالموادعة یا معاهدینو نه څوک له ځان سره اسیر کـړي او بیـا مسلمانانو پر هغوئ باندې حمله وکړه او هغه اسیر یې ترې له ځان سره بوت، نودا اسیر مـال فـئ دی، خو که چیرته سوداګر دارالموادعة تـه ورغـی ،نـو هغه به په امان کې وي او حکم یې دمخکیني اسیر څخه جلا دی، دا فقهي جزئیات په (البدائع الصنائع للکاساني ۷ / ۱۰۹ .)کې په پوره وضاحت او تفصل سره شتون لري .



# هغه څوک چې امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره یې حسد کاوه!

ژباړه: عبید الله حبیبي

د امام شافعي رحمه الله په وخت کې یوه ډله علماوو چې د هغه سره یې د هغه د ځیرکتیا او پوهې له لامله حسد او کینه کوله او تل به یې هغه ته د امیرانو په وړاندې دسیسې جوړولې ،یوځل ټولو مشوره وکړه، چې باید د هارون الرشید په وړاندې له هغه څخه سختې فقهي پوښتنې وشي، چې هغه یې جواب ونه ویلی شي ،نوهارون الرشید په دربار کې امام شافعي رح او دوئ حاضر شول او له هغه څخه یې پوښتنې پیل کړې.

. 1 په دوه عاقلو مسلمانانو چې شراب وڅښي، په یوه ولې حد جاري کېږي او په بل نه؟ امام شافعي ځواب ورکړ: ځکه یو ماشوم او بل بالغ دی.

. 2 پنځه کسانو له یوې ښځې سره زنا وکړه، په اول قتل واجب شو، په دوه یم رجم، په دریم حد، په څلورم نیم حد او په پنځم هیڅ هم نه.

امام شافعي ځواب ورکړ: لومړي کس زنا حلاله ګڼله، نو مرتد دی او قتل یې واجب دی، دو یم واده لرونکی دی، دریم مجرد ځوان دی، څلورم غلام دی او پنځم لېونی.

. 3 یو سړی لمونځ کوي، چې ښي طرف ته یې سلام واړاوه ښځه پرې طلاقه شوه، چې چپ طرف ته یې واړاوه ،لمونځ یې باطل شو، او چې اسمان ته یې وکتل نو زر درهمو اداینه پرې واجب شوله.

امام شافعي ځواب ورکړ: کله یې چې ښي طرف ته سلام واړاوه ،نو هغه سړی یې ولید، چې ده یې په نه شتون کې له ښځې سره نکاح کړې وه، کله یې چې چپ طرف ته سلام واړاوه، نو په جامو یې ګندګي ولیده او لمونځ یې باطل شو او کله یې چې اسمان ته وکتل نو میاشت یې ولیده، چې باید د هغې میاشتې په را برسېره کېدو قرض اداء کړي .

. 4 د هغه امام په اړه څه وایې، چې په جوماتکې د څلورو کسانو امامت کوي، یو بل سړی راننوت او کله یې چې سلام وګرځاوه، نو امام باید قتل شي،

ځلور واړه مقتديان بايد په درو ووهل شي او جومات بايد ړنګ کړی شي.

امام شافعي ځواب ورکړ: دا کوم بيرونی سړی چې جومات ته راننوت، نو دا پر سفر و، کله چې سفر ته تللو نو خپله ښځه يې د ورور په کور کې پريښې وه، هغه کس يې وواژه او دعوه يې وکړه، چې دا ښځه ددې مقتول مېرمن ده دې ځلور کسانو پرې ګواهي ورکړه او ده ورسره نکاح وتړله او دا جومات ددې مقتول کور و.

. 5 يو کس اوبه را واخستې حلالې يې وڅښلې او پاتې حرامې يې پرېښودې؟

امام شافعي ځواب ورکړ: دې کس اوبه وڅښلې او په نيمايي کې يې پرنجی وکړ او له پوزې يې په ګيلاس کې وينې تويې شوې، نو پاتې اوبه ورته حرامې شوې.

. 6 دوه کسان د بام په سر وو، يو يې را پرېوت او مړ شو او په دې بل له خپلې ښځې سره نکاح حرامه شوه؟

امام شافعي لږ فکر وکړ، بيا يې ځواب ورکړ: هغه کس چې له بام څخه را پرېوت ،خپله لور يې دې غلام ته چې د بام په سر يې ورسره کار کاوه، ورکړې وه، کله چې هغه مړ شو، نو لور يې ددې غلام باداره شوه او له هغه سره يې نکاح حرامه شوه. هارون الرشيد چې د امام شافعي ځيرکتيا وليده ،نو خپله حيرانتيا يې پټه نه کړی شوه، نو ويې ويل: بنې عبد مناف چې وينا کوي، نو ډېره ښه يې کوي، په خبرو کې يې فصاحت او په تفسير کې يې بلاغت شته دی.

امام شافعي رحمه الله ورته وويل: الله تعالی دې د اميرالمؤمنين عمر ډېر کړي، زه له دوی څخه پوښتنه کوم، که چېرته يې ځواب راکړ ،نو د شکر ځای دی او که يې رانکړ، نو بيا ما د دوئ له شر څخه خلاص کړه.

هارون الرشيد ورته وويل: ته دې سوال وکړه، غوښتنه مو منل کېږي مهرباني وکړئ.

امام شافعي رحمه الله پوښتنه وکړه: يو کس مړ شو ( ٦٠٠ ) ديناره ترې پاتې شول، خور ته يې يوازې يو درهم ورسېد، نو دا څه ډول هغې ته يوازې يو درهم ورسېد؟

دې خلکو ډېر فکر وکړ، خو ځواب يې پيدا نه کړ، بيا له ډېر ځنډ وروسته هارون الرشيد امام شافعي ته امر وکړ چې ته يې ووايه.

امام شافعي ځواب ورکړ: دا کس مړ شو، دوه يې لونې، يوه يې مور، دوولس يې ورونه او يوه يې خور ده، لونو يو دوه ثلثله يعنې ۴۰۰ درهمه واخستل مور يې شپږمه برخه واخسته يعنې ۱۰۰ درهمه، ښځې يې اتمه برخه واخسته يعنې ۷۵ درهمه، ۲۴ درهمه يې ورونو او يو يې خو رته ورسېد.

هارون الرشيد په دې ځواب ډېر سخت خوشحاله شو ،ورته يې دعا وکړه، چې الله دې ستا په شان عالمان زما په کورنۍ کې زيات کړي، د ۱۰۰۰ درهمو د ورکړې امر يې وکړ، امام شافعي هغه درهم د قصر په خادمانو ووېشل.

# د هارون الرشید په نوم دحضرت سفیان ثوري «رحمه الله» لیک

ژباړه: بهیر ستانکزی

هارون الرشید دخواک دلاسته راوړلو وروسته، امام سفیان ثوري رح ته دعباد الطلقاني په لاس لیک واستاوه، چې په هغه کې یې لیکلي وو،چې زه ستا دلیدو ارزو لرم او شکایت یې کړی وو،چې نورو علماوو ماسره لیدنې وکړې او مبارکي یې راکړه، لیکن نه تا مبارکي راکړه او نه دې راسره لیده وکړل.

دا خط حضرت امام ته هغه وخت ورسید، چې هغه دکوفې په مسجد کې دشاګردانو تر منځ ناست و، دخط تر اوریدو وروسته هغه وویل ددې لیک په شا زما ځواب ولیکئ :

"دسفیان ثوري رح دالیک دحق یوه ښکاره نمونه ده، دقضا دلوړوالي او دقضا(علی السلطان واعوانه) په هکله دالاندې اقتباس وګورئ"

(يَا هَارُونُ .. قَعَدْتَ عَلَى السَّرِيرِ ، وَلَبِسْتَ الْحَرِيرِ ، وَأَسْبَلْتَ سُتُورًا دُونَ بَابِكَ ، وَتَشَبَّهْتَ بِالْحَجَبَةِ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ثُمَّ أَقْعَدْتَ أَجْنَادَكَ دُونَ بَابِكَ ، وَسَتْرِك يَظْلِمُونَ النَّاسَ ، وَلا يُنْصِفُونَ ، وَيَشْرَبُونَ الْخَمْرَ وَيُحِدُّونَ الشَّارِبِ ، وَيَزْنُونَ وَيُحِدُّونَ الزَّانِيَ ، وَيَسْرَقُونَ السَّارِق ، وَيَقْتُلُونَ وَيُحِدُّونَ الْقَاتِلِ .

أَفَلا كَانَتْ هَذِهِ الأَحْكَامُ عَلَيْكَ وَعَلَيْهِمْ قَبْلَ أَنْ يَحْكُمُوا بِهَا عَلَى النَّاسِ .)

اې هارونه ،ته په تخت ناست یې ،دوریښمو کالي دې اغوستي دي په دروتزو دې پردې راځوړندې کړي او خلکو ځخه په پټوالي سره دخداي ﷻ سره مشابهت کوې ،ددې نه پرته تا په دروازه کې هم خلک ټاکلي دي، چې په ظلم حکم کوي، انصاف نکوي، هغوئ په خپله شراب څښي، خو نوروشراب څښونکو ته سزا ورکوي، په خپله زنا کوي، خو نورو زنا کوونکو ته سزا ورکوي، په خپله غلا کوي ،خو دنورو غلو لاسونه پرې کوي، په خپله وژل کوي، خو دنورو وژونکو ځخه قصاص اخلي، نو ایا دخداي ﷻ داقوانین په تا او ستا په دې مامورینو دنورو ځخه تر مخه دجاري کیدو له پاره نه دي راغلي ؟

دلیک په شرو ع کې یې دملت دخزانې په بې ځایه استعمال سخت تنقید کړی او په اخر کې یې دقیامت دورځې ځخه ویرولی دی.

"وَإِيَّاكَ ثُمَّ إِيَّاكَ أَنْ تَكْتُبَ إِلَيَّ بَعْدَ هَذَا ، فَإِنِّي لا أُجِيبَكَ وَالسَّلام ."خبر اوسه خبر اوسه چې اینده کې زما په نوم هیڅ لیک ونه لیکې او که نه زه به ځواب درنکړم والسلام

کله چې هارون رشید ته دا لیک ورسید، نو دسترګو ځخه یې اوښکې روانې شوې ،یو درباري ورنه پوښتنه وکړه، چې هغه ستا په مقابل کې ډېر جرات ښودلی دی، دهغه نیول پکار دي

هارون ورته وویل:

ته د دنیا بنده یې او سفیان رح یوازې د یو امت حیثیت لري.




# په لمانځـه کې څرنګه خشـوع ترلاسـه کولای شو؟

مفتي نذیر احمد

څرنګه چې لمونځ داسلام له مهمو پنځو بناوو څخه یو دی ، اودقیامت په ورځ به لمړی پوښتنه دلمانځه په اړه کیږي اوهغه لمونځ دالله تعالی جل شانه په دربارکې قبول دی ،چې په خشوع سره ترسره شي ، مګر له بده مرغه چې زموږ ډیر ورونه له خشوع څخه ناخبره دي او آن ځیني ورونه خو هسي ښکته پورته شي اوګمان کوي ،چې نور یې له لمانځه غاړه خلاصه شوي اوپه دې ګډوډ لمونځ باندي دهغه اجر اوثواب طمعه لري چې الله جل جلاله یې وعده کړې ، خوحقیقت دادی ،چې په کوم لمونځ کې خشوع نه وي، هغه دالله تعالی په دربارکې دقبول وړ نه دی ، نو داچې په څه ډول په لمانځه کې خشوع ترلاسه کړو، نو راځئ په دې اړه دالیکنه ولولو !

**په لمانځه کې دخشوع ترلاسه کولو لپاره درې درجې دي :**

په لمانځه کې دخشوع ترلاسه کولو درې درجې او درې زیني دي ، لمړی درجه داده، چې کوم الفاظ په ژبه سره اداء کیږي، دهغو الفاظو طرف ته مو توجه وي ، دوهمه درجه یې داده، چې دهمدي الفاظو معانیو ته مو فکر وي ، اودریمه درجه داده، چې لمونځ په دې فکرسره اداء کړو، لکه چې موږ الله جل جلاله وینو ،یا کم ترکمه که موږ یې نه وینو، نو الله تعالی خو مو ویني ، او د(سورة المؤمنون )په لمړي آیت کې چې دکامیابو مؤمنانو کوم صفت بیان شوی ،چې په لمانځه کې خشوع کوي ، هلته په دې خبره هم تنبیه راکړل شوې، چې یوازې په لمانځه کولو باید اکتفاء ونه کړو، بلکې په لمانځه کې دخشوع پیداکولو هم پوره هڅه اوکوشش وکړو!

اکثره خلک شکایت کوي ،چې زه کله لمونځ کوم، نو ډیر خیالونه اوفکرونه راته پیداکیږي ، موږ باید ددې خیال اوفکر له امله پریشان نه شو ،بلکې دهغې دله منځه وړلو او علاج طرف ته متوجه شو ، اصل خبره هم همدا ده، چې باید دکوم تکلیف اونقص له امله غمجن نه بلکې دهغه دلیري کولو اوله منځه وړلو لاره غوره کړو، چې ددې تکلیف اونقص لیري کولو لپاره کومې لارې چارې شته ؟

**لمړی لاره یې داده :** چې الله تعالی له لمانځه وړاندې کوم مقدمات قائم کړي ، دهغه خیال وساتو، لمونځ خو مقصود اصلي دی، لیکن ترلمانځه وړاندې څو

داسي مقدمات اوتمهيدات اينبودل شوي، چې په مټ يې يو انسان اصل لمانځه ته رسيږي ، که يوانسان همدغه تمهيدي کارونه په صحيح توګه ترسره کړي ،نوپه لمانځه کې دخيالونو اوفکرونو راتلل به پخپله کم شي .

**دلمانځـــه مقـــدمات :** الله تعــالی دلمانځـــه پـــه مقـدماتوکې ترټولـو لـمړی طهـارت ايښـی ، ځکـه خـو دهرلمونځ کونکي لپاره طهارت اوپـاکي حاصلول ضروري دي ، په يوه مبارک حديث کې راغلي : مفتاح الصلوة الطهور ،يعني پاکي دلمانځه چابي اوکيلي ده ، په يوه بل حديث کې راغلي : لاتقبل الصلوة بغير طهور ، يعني کـوم لـمونځ لـه طهـار ت اوپـاکي پرتـه دالله تعـالی پـه وړاندي دقبليدلو وړتيا نه لري

**استنجاء :** دطهـارت سلسله لـه اسـتنجاء څخـه پيليږي ، چې په اړه يې علماء کرامو ليکلي انسان دي داستنجاء کولو په مهال دطهارت حاصلولو پوره کوشش کـوي ترڅـو پـوري چـې د بولـو دڅـاڅکو راتلـو ويـره وي ،ترهغه وخت دي ځان نه فارغ کوي چې دفقـه پـه اصطلاح کې ورته استبراء ويل کيږي ، ځکه که په سمه توکه پاکي ونه کړله شي، پـه بـدن يـا جامو بانـدي يـې دنجاست اثرات پاتي کيږي چې له امله يـې انسان پـه ډول ډول فکرونو مبتلاء کيږي .

**ناپاکي دخيالاتو سبب :** الله تعالی په هرڅـه کې ځه خصوصيات ايښي ، دناپاکۍ يوه خاصه داده چې لـه امله يـې دانسـان پـه زړه کـې ناپـاک اوخـراب خيالونـه ، شـيطاني وسوسـې پيـداکيږي ، ځکـه نـو دلمانځـه ترټولولمړی تمهيدي کار دادی ،چې دناپاکۍ ليري کولـو اهتمام وکړای شي .

**دلمانځه دوهمه مقدمه اودس :** له دې وروسته دوهـم تمهيـدي کـار اودس کـول دي ، دا اودس هـم يوعجيب اونادرشئ دی ، په حديث شريـف کـې راغلي چې : رسـول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : کله چې يوانسان اودس کوي او پـه اوداسـه کـې خپـل مـخ پريولي نو له امله يې دسترګوپه مټ شوي ټول صغيره ګناهونه وينځل کيږي ،همداراز چې کله انسان لاسونه مينځي نـو الله تعالی دهغـه دپښـو لـه املـه کړل شـوي ګناهونـه ورتـه معـافوي ، ...اوکـوم څـه څلـور اندامونـه چې په اوداسه کې وينځل کيږي ،يامسح ورباندي کول کيږي ،په عامه توګه دبدن همدغه غړو بانـدي ګناهونـه کيږي ، الله تعالی دا انتظام فرمايلی ،چې بنـده دلمانځـه لپاره زماپه حضورکې حاضريږي ،نو لمړی يې بايد له بدن څخـــه ګناهونـــه ليـــري کـــړی شي ، دهغـــه لاس ، مـخ اوپښـې لـه ګناهونوڅخـه پـاک شي ، خـو البتـه لـه ګناهونوڅخـه صـغيره او واړه ګناهونـه مـراد دي،ٌ ځکـه لوی ګناهونه له توبې پرته نه معافيږي

دامام ابوحنيفه رحمه الله په اړه مشهوره ده، چې کله به چا دنومـوړي پـه وړانـدي اودس کـاوه، نـو دهغـه داوداسه په اوبـوکې بـه يـې دهغـه دګناهونوشـکلونه پـه نظر راتلل، چې اوس فلانـی ګنـاه مينځلـه کيـږي - الله تعالی نوموړي ته داکشف ورکړی ؤ - پـه هرصـورت الله تعالی ترلمانځه وړاندي اودس ددې لپاره مقررکړی، چې په دې سره نه يواځې ظاهري پاکي ترلاسه کيږي بلکـه بـــاطني صـــفايي اودګنـــاهونو صـــفايي هـــم وربانـــدي حاصليږي .

پـــه کـــوم ډول اودس سره ګناهونـــه وينځـــل کيږي : بايدوويل شي چې لـه اوداسـه څخـه دافايـده هغه مهال ترلاسه کيدی شي، چې کله يوانسان دسنت

مطابق اودس وکړي ، اوهغه ډول اودس وکړي څرنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کړی ، درسول الله صلی الله علیه وسلم یو عادت مبارک داو، چې کله به یې اودس کاوه ، نوقبلې لوري ته به یې مخ کړ ، همداراز هغه صلی الله علیه وسلم به داودس په پیل کې بسم الله الرحمن الرحیم ویله او داودس په مهال به یې خبري نه کولي، بلکې اودس کولو ته به متوجه و.

**داودس طرف ته توجه :** داودس طرف ته دتوجه ترټولو لویه خبره داده ،چې کله انسان خپل مخ وینځي ،نو دې ته یې باید توجه وي ،چې زما دمخ ګناهونه وینځل کیږي ،اوکله چې لاسونه پربمنځي نو دې ته یې توجه اوفکروي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې داودس په مهال دلاسونوووینځلوسره دلاسونوګناهونه معافیږي نو دامهال زما دلاسونو ګناهونه وینځل کیږي ،همداراز داوبو په استعمال کې باید اسراف ونه کړي ، زیاتي اوبه توی نه کړي ،چې دڅومره اوبو ضرورت وي ،بس همدومره اوبه دي استعمال کړي ، په یوه مبارک حدیث کې راغلي : ایاک والسرف وان کنت علی نهرجار یعني ځان له اسراف نه وژغوره که څه هم د رواني ویالي پرغاړه یې.

ګورئ که څوک درواني ویالي په اوبو په هرڅومره اوبو اودس وکړي، له امله یې په اوبوکې کوم کمې نه راځي ،خوله دې سره سره یې فرمایلي چې په داسي موقع هم له اسراف نه ځان وژغورئ او اضافي اوبه مه تویوئ.

**داودس کولو په مهال دعاګاني :** د اودس کولو په مهال دعاګاني وکړئ ، په حدیث شریف کې راځي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به کله اودس کاوه ، نوپه کثرت سره به یې اشهدان لا اله الاالله واشهدان محمدعبده ورسوله ویله ، او همداراز اللهم اغفرلي ذنبي ووسع لي في داري وبارک لي في رزقي ، او له اودس وروسته به یې دادعا ویله : اللهم اجعلني من التوابین واجعلني من المتطهرین ،

که کوم څوک له دې ادابوسره اودس وکړي نو ددې اودس خاصه بیا داده، چې

دا ډول خیالونه چې زموږ په زړه اودماغ کې یې ځای نیولی له هغه به موپاک کړي اودالله تعالی لوري ته به مو دماغ متوجه کوي .

**داودس په مهال خبري اتري کول :** زموږ لویه تیروتنه اوغلطي داودس له پیل څخه شروع کیږي ،کله چې موږ داودس کولو لپاره کښینو ،نو ددنیا ټول خرافات داودس کولو په مهال روان وي ، ګپ شپ اوخبري اتري کیږي، چې په داسي حال کې چې په هیڅ هم نه یو،خبر اودس کوو ، بس هسې- ژر ژر خپل فرض ساقط کړو اوځانونه فارغ کړو. چې نتیجه یې داشي چې داوداسه له ټولو فایدو اوثمراتو بې برخي شو ، ددې په ځای که موږ په توجه فکر اوادابوسره اودس وکړو اوداودس په مهال دعاګاني ووایو نو دلمانځه لمړی تمهید اولمړئ مقدمه به مو سمه کړي وي

دلمانځه دریمه مقدمه داده، چې کله دي اودس وکړ، مسجد ته راغلي ، نو مسجد ته ترجماعت دریدلو لږ وړاندي راشه اودتحیة المسجد اوتحیة الوضوء په نیت سره دوه رکعته لمونځ اداء کړه ، دادوه رکعته واجب یاسنت مؤکد نه دي، لیکن ډیر زیات فضیلت لري ، په حدیث شریف کې راغلي چې : یوځل رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت بلال رضی الله تعالی عنه ته وفرمایل : ای بلاله ! کله چې زه معراج ته لاړم

